## و.ا.لنین



# دګوند تشکیلات
# او ګوندي ادبیات

ګډه ژباړه: ویاړ او زیږ افغان

# دگوند تشکیلات او گوندي ادبیات[۱]

## (۱۹۰۵)

د اوکتوبر تر انقلاب [۲] وروسته نویو رامنځ ته شویو موقعیتونو سوسیال دیموکراسۍ ته د گوندي ادبیاتو مسئله مطرح کړې ده. د قانوني او غیر قانوني خپرونو تر منځ توپیر، دا د روسیې د فیوډالي استبداد د پیر غمجن میراث له منځه تلونکی دی. خو لا یې بشپړه له منځه تللو ته ډېر وخت پاتې دی. زموږ د لومړي وزیر ریاکاره دولت لا په لېونتوب بوخت دی، تر دې چې د روسیې کارگري بولټن «ازویستیا سوویتا رابوچیت دیپوتاتو» [۳] لا هم په «غیرقانوني» ډول چاپېږي.دا د مخنیوي احمقانه هڅې، چې دولت یې د پلي کولو توان هم نلري، د دولت د رسوایۍ او د لا ډېرو سختو اخلاقي گوزارونو برسېره بله پایله نلري.

تر هغو چې د قانوني او غیرقانوني خپرونو تر منځ توپیر شتون لاره، د گوندي او غیر گوندي خپرونو د مسئلې په اړه په ډېرې سادگۍ، په ډېرې ناسمتیا او په غیر طبیعي ډول پرېکړه کېدله. ولې چې ټولې غیرقانوني خپرونې گوندي خپرونې وې، چې د گوندي تشکیلاتو په وسیله چاپ او اداره یې هم د هغو ډلو په لاس کې وه، چې په بېلابېلو بڼو د گوند کارگرو فعالینو د ډلو سره په اړیکو کې وو. ټولې قانوني خپرونې غیر گوندي خپرونې وې - ځکه چې گوندونه ممنوع شوي وو، خو هرې یوې دې یا هغه گوند ته «میلان» لرلو. په داسې موقعیت کې له غیر طبیعي اتحادونو، عجیبه او ناآشنا «شریکانو» او کاذبه پوښښي تدبیرونو څخه ډېده کول ناشوني وو. د هغو کسانو اجباري احتیاط چې غوښتل یې گوندي اندونه بیان کړي د هغو کسانو له اومه تفکر یا ذهني ډارنتیا سره مدغمه شوه، چې دې اندونه ته لا نه و رسیدلي او په واقعیت کې د گوند غړي نه وو.

د آسوپین[۱] (Aesopian) ژبې کرکېجنه دوره، ادبي اسارت، مریي وزمه وېناوې او ایډیولوژیکه غلامي! پرولتاریا پر دې ناپاکه فضا باندې، چې په روسیې کې یې هر ژوندی او تاند

---

۱) آسوپین هغه رمزناکه ژبه وه چې د سانسور د مخنیوی لپاره اکثراً له غیرقانوني خوځښتونو لخوا کارېدله. دا اصطلاح د آیسوپ له نوم څخه سرچینه اخلي، چې د لرغوني یونان د رمزي ژبې یو افسانه لیکونکی و. د آسوپین ژبې اصطلاح

شی له منځه وړلو، د پای سور ټکی کېښود، خو پرولتاریا د روسیې لپاره لا نیمایي آزادي لاس ته راوړې.

انقلاب لا ندی بشپړ شوی. په داسې حال کې چې تزار د انقلاب د ماتولو ځواک نلري، انقلاب هم لا د تزار د ماتولو لپاره کافي ځواک ته ندی رسیدلی. مونږ په یوه داسې مهال کې ژوند کوو، چې هر چېرې او په هر څه کې د ځرګندې، روښانې، سیده او استوارې ګوندي روحیې او د مخفي، پټې، «دیپلوماتیک» او غیرصادقانه «قانونتیا» تر منځ یو غیرطبیعي ترکیب شتون لري. دا غیر طبیعي ترکیب حتی زمونږ په ورځپاڼو کې محسوسیږي: د سوسیال دیموکراسی د دې استبداد په هکله چې د منځلارې لیبرالې بورژوایي خپرونې ممنوع کوي، د ښاغلي ګوچکوف (Guchkov) [٤] د ټولو ملنډو سره سره. واقعیت دا دی چې لا تر اوسه د روسیې د سوسیال دیموکراسی کارګر ګوند مرکزي ارګان «پرولتاری»[٥] د استبدادي او پولیس ځپلی روسیې له تړلو دروازو څخه بهر خپریږي.

هر څه چې وي نیمګړی انقلاب مونږ ټول دې ته اړباسي، چې هر څه له نوې سیاسي کرښې سره سملاسي تنظیم کړو. که نني ادبیات، ان هغه چې په "قانوني" توګه خپریږي نهه پر لسمه برخه یې ګوندي ادبیات وي، باید ټول په ګوندي ادبیاتو بدل شي، د بورژوازي د دودونو، د بورژوازي د ګټندویه سوداګریزه مطبوعاتو، د بورژوازي د ادبي کارنامو جوړولو او اندیویدالیزم، د «اشرافي انارشیزم» او سود لاس ته راوړنې په وړاندې، سوسیالیسته پرولتاریا باید د ګوندي ادبیاتو اصول وړاندې کړي، دا اصول باید متکامل کړي او تر وروستي کچې پورې یې په بشپړه او په ټوله مانا یې پلی کړي.

د ګوندي ادبیاتو اصول څه دي؟ نه یوازې دا، چې د سوسیالیستي پرولتاریا لپاره ادبي چارې نباید د انفرادي کسانو او یا ګروپونو د بډایولو سرچینه واوسي، بلکې نباید اصلن انفرادي مسئله واوسي، چې د پرولتاریا له مشترک هدف څخه خپلواک وي. مړه دې وي غیر ګوندي لیکوالان! مړه دې وي ځبرادیبان! ادبیات باید د پرولتاریا د مشترک هدف برخه وګرځي، د یوه متحد، لوی

---

لومړی ځل په نولسمې پېړۍ کې روسي لیکوال، میخاییل سلتیکوف شیدرین د تزار وخت د ټولنیزو ناخوالو باندې د ملنډو وهلو په موخه وکاروله چې لیکنې یې د تزار له سانسور خوندي پاتې شي، ځکه د هغه د دې ژبې اصلي هدف د تزار مسخره کول و. پښتو.ژ

سوسیال دېموکراتیک میکانیسم په هغه "دندانه داره څرخ او پېچ" بدل شي، کوم چې په سیاسي پوهې سمبالې ټولې کارگرې طبقې لخوا په خوځښت راځي. ادبیات باید د سوسیال دېموکراتیک گوند د کار منظمه، پلان شوی او نه جلا کېدونکی برخه وگرځي.

یو آلمانی متل وایي، "هره پرتله نیمگړتیاوې لري". همدا ډول د یوه دندانه داره څرخ سره د ادبیاتو او د یوه میکانیزم سره د یوه ژوندي غورځنگ کومه پرتله چې ما کړې، نیمگړې ده. زه په جرأت ویلی شم چې په هر صورت شته داسې هیستېریک روښاندي، چې د دې پرتلې په تړاو به انگولاوې وکړي، چې گنې د اندونو آزاده مبارزه، د نېوکې آزادي، د ادبي خلاقیت آزادي او داسې نورو ته په سپکه گورم، وژنم یې او "بروکراتیزه" کوم یې. داسې یو اعتراض په حقیقت کې د بورژوایي - روښانده اندویدوالیزم څخه پرته بل څه نه دي. په دې کې شک نشته چې ادبیات تر ټولو لږ د میکانیکي انډول او هم سطحه کولو تابع، بلکې زیات پر اقلیت باندې د ټولنې د اکثریت د حاکمیت تابع دي، په دې کې شک نشته چې په دې برخه کې باید شخصي ابتکار، فردي تمایل، اند او تخیل، بڼې او منځپانگې ته پراخه ډگر ورکړل شي. د دې مسایلو څخه څوک انکار نه کوي خو همدا مسایل په سادگۍ سره څرگندوي، چې د پرولتاریا گوند د مرام ادبي اړخ له نورو اړخونو سره په میکانیکي ډول نشو کولای برابر وگڼو. دا په هر صورت د دې موضوع د رد لامل نه کیږی، چې ادبیات باید د ټولو امکاناتو او لزوماً د سوسیال دیموکرات گوند د کار یو عنصر شي، چې له نورو عناصرو څخه نه جلا کېدونکی وي؛ که څه هم دا د بورژوازۍ او د بورژوایي دیموکراسۍ لپاره بیگانه او پردۍ ده. ورځپاڼې باید د گوند د بېلابېلو تشکیلاتو ارگانونه وگرځي او لیکوالان یې باید په ټوله مانا د دې گوندي سازمانونو غړي واوسي. د خپرولو او وېشلو مرکزونه ،کتابپلورنځي او لوست خونې، کتابتونونه او ورته نور بنسټونه ټول باید د گوند تر کنترول لاندې وي. متشکله سوسیالیستي پرولتاریا باید دا ټول کار په پام کې ونیسي، په بشپړه توگه یې وڅاري او له پیل څخه تر پایه پورې، پرته له استثنا د ژوندۍ پرولتاریا روانه موخه په هغه کې تزریق کړي، او پدې توگه د زاړه، نیم اوبلوموف [۵]،نیم سوداگریز روسي پرنسیپ زمینه له مینځه ویسي چې: لیکوال دی ولیکي، لوستونکي دی ولولي.

البته چې مونږ دا وړاندیز نه کوو چې دا ټول بدلونونه په ادبي آثارو کې، چې د آسیایي سانسور او اروپائي بورژوازۍ لخوا ککړ شوي، په یوه ځل تر سره شي. موږ ته وړ نه ده، چې له هر ستندرد شوي سیستم څخه ملاتړ وکړو او یا وغواړو مشکل په څو فرمانونو حل کړو، تر مخه

جوړې شوې وچې طرحې په دې اړوند زمونږ په درد نه لګيږي، هغه څه چې اړين دي، دا دي، چې زمونږ ټول ګوند او په ټولې روسيې کې په سياسي پوهه سمباله سوسيال ديموکراتيکه پرولتاريا بايد د دې نوې مسئلې په اړه خبر شي، په ښکاره توګه يې ځانګړې کړي او هر چېرې د هغه د حل په هڅه کې واوسي. د فيوډالي سانسور له اسارت څخه وروسته مونږ لېوالتيا نلرو چې د بورژوازۍ د سوداګرېزه ادبي اړيکو بنديوان واوسو او کيږو به هم نه. مونږ غواړو او بايد هم  آزاد ادبيات رامنځ ته کړو، نه يوازې د پليس له منګولو څخه آزاد، بلکې د سرمايې له بنده هم آزاد، له کارنامې جوړولو او تر ټولو پورته د بورژوايي انارشيستی اندويدواليسم څخه آزاد ادبيات.

دا وروستنۍ کلمې کېدای شي لږ څه متناقضه او ان لوستونکي ته يو ډول اهانت غوندې ښکاره شي.کېدای شي  ځينې روښاندي، د آزادۍ يو  تود اتل، چيغه ووهي: څه! تاسو غواړئ پر ادبي کار،  پر داسې ظريفه او فردي ښکارنده جمعي کنټرول وتپئ! تاسو غواړئ کارګران د پوهې، فلسفې او  ښکلا پېژندنې مسئلو په اړه د رايو په اکثريت سره پرېکړه وکړي! تاسو د مطلق انفرادي فکري کار له مطلقې آزادۍ څخه انکار کووی!

ښاغلو، آرام شئ! تر ټولو لومړی، موږ له ګوندي ادبياتو او هغه د ګوند تر کنټرول لاندې راوستلو په اړه غږېږو. هر څوك آزاد دی، چې پرته له محدوديته هر څه چې غواړي ووايي او يا يې وليکي. خو هر داوطلبانه سازمان (د ګوند په ګډون) هم آزادي لري،  هغه غړي، چې د ګوند د نوم په کارولو سره  د ګوند ضد عقايدو څخه ملاتړ کوي، له ګونده وشړي. د بيان او خپرونو آزادي بايد بشپړه وي، خو په دې صورت کې بايد د ټولنو آزادي هم بشپړه وي. زه مجبور يم د بيان د آزادۍ په نامه تاسوته بشپړه حق در کړم، چې کوکې ووهئ، درواغ وواياست او د خپل زړه خبرې وليکي، خو تاسو هم د ټولنو د آزادۍ په نامه مجبور ياست چې ما ته حق راکړئ، چې په يوه سازمان کې د دې يا هغې عقيدې لرونکي سره يوځای يا ترې بېل شم. ګوند يو داوطلبانه سازمان دی ، چې که چېرې ځان له هغو خلکو پاک نکړي چې د ګوند ضد نظراتو څخه ملاتړ کوي، نو په ناچاره به لمړی په ايديولوژيکي لحاظ او بيا په فزيکي لحاظ پاشل کيږي. د ګوندي او ګوندي ضدو عناصرو تر منځ د بريد کرښې د ټاکلو لپاره د ګوند کړنلاره، د تاکتيکونو په اړه د ګوند پرېکړې او مقررې او بلاخره د انترناسيوناليستي سوسيال ديموکراسۍ او د پرولتاريا د داوطلبانه انترناسيوناليستي ټولنو ګرده تجربه شته دې، کوم چې په دوامداره توګه خپلو ګوندونو ته داسې انفرادي عناصر او ګرايشات راننباسي چې نه بشپړه استواري لري، نه بشپړ مارکسيستان دي

او نه هم په بشپړه توګه سم دي، خو بلې خوا ته په دوامداره توګه هر څه موده وروسته د خپلو غړو «تصفیه» ترسره کوي. ګورئ، چې مونږ هم په ګوند که د ننه د بورژوائي "انتقاد د آزادئ" له پلویانو سره مخ یوو. زمونږ ګوند اوس په سرعت سره په ولسي ګوند د بدلېدلو په حال کې دی، چې ناڅاپه په یو علني سازمان د بدلېدلو لورې ته درومي او ناچاره ډېر کسان به موږ سره یوځای شي چې (د مارکسیستي لید له مخې) به متناقض اندونه ولري، شاید موږ سره ځیني مسیحیان او ان ځیني متصوفین یوځای شي. مونږ سالمې معدې لرو، مونږ د ډبرو په څېر کلک مارکسیستان یو. مونږ به دا متناقض عناصر هضم کړو. په ګوند کې دننه د اند آزادي او د نېوکې آزادي به مونږ هېڅکله پرې نه ږدي چې په دواطلبانه سازمانونو کې، چې د ګوندونو په نامه پېژندل کیږي، د خلکو د سازماندهي لپاره آزادي لرل هېر کړو.

دوهم، تاسې بورژوا اندویدیالیستانو ته باید ووایو، چې ستاسو خبرې د مطلقې آزادئ په اړه یوازې نړه منافقت دی. په یوه ټولنه کې چې بنسټ یې د پیسو پر ځواک ایښودل شوی، په یوه ټولنه کې، چې کارګرې پرګنې یې په بېوزلۍ کې ژوند تېروي، او د شتمنو یوه کوچنۍ ډله پرازیتي ژوند کوي، کېدای نشي چې یوه واقعي او موثره "آزادي" شتون ولري. ښاغلیه لیکواله، آیا ته له خپل بورژوا خپرندوی څخه آزاد یې؟ له خپلو بورژوا لوستونکو څخه آزاد یې، چې له تا په لیکنو کې شهوت پارونکي رومانونه[٦] او تصویرونه او په «سپېڅلي» تجسمی هنر کې د «متمم» په توګه درڅخه فحشا غواړي؟ دا مطلقه آزادي یو بورژوایي یا انارشیستي عبارت دی (له هغه ځایه چې د نړۍ لید په توګه انارشیسم د بورژوازئ فلسفې اوښتې بڼه ده). تاسو نشئ کولای، چې هم په ټولنه کې ژوند وکړئ او هم له هغې څخه آزاد واوسئ. د بورژوا لیکوال، هنرمند او لوبغاړي آزادي هغه ماسک (یا ریاکارانه ماسک) دی چې د پیسو په کڅوړ و، درغلۍ او فحشا پورې تړلی دی.

او مونږ سوسیالیستان به دا منافقت بربنډ او دا دروغجن لیبلونه به څېري کړو، نه د دې لپاره، چې غیرطبقاتي ادبیات او هنر ترلاسه کړو (چې دا به یوازې له سوسیالیزم څخه وروسته په غیر طبقاتي ټولنه کې شوني وي)، بلکې د دې ریاکارانه آزادو ادبیاتو سره د مقابلې لپاره، چې په واقعیت کې په بورژازئ پورې تړلي ادبیات دي او واقعاً آزادو ادبیاتو لپاره، چې په ښکاره توګه به له پرولتاریا سره تړاو ولري.

دا به آزاد ادبيات وي، ولې چې نه به حرص او نه به د کارنامو جوړولو، بلکې د سوسياليزم مفکوره او له زيارکښانو سره خواخوږي به په متداومه توګه نوي ځواکونه د دوی کړښو ته راجذب کړي. دا به آزاد ادبيات وي، ځکه چې نه به د هغو مشهورو لوبغاړو مېرمنو په چوپړ کې وي چې له مړښته کانګې ورځي او نه به د هغو «له لس زرو پورته» ستومانه انسانانو په چوپړ کې وي، چې د خپل بدن د وازګو  د خوسا کېدو ځخه کړېږي، بلکې د ميليونونو او د لسګونو ميليونونو زيارکښانو - دا د هېواد ګلانو، دا د هېواد ځواک او دا د هېواد راتلونکي - په چوپړ کې به وي. دا به آزاد ادبيات وي، چې د انسانيت انقلابی تفکر وروستی کلام به د سوسياليستي پرولتاريا د تجربې او ژوندي کار په مرسته بډايه کړي او د تېرې تجربې (علمي سوسياليزم، له ابتدايي، اوتوپيستي بڼو ځخه د سوسياليزم تر تکامله پورې) او د اوسنی تجربې (د ملګرو کارګرانو اوسنی مبارزې) تر منځ به تلپاتې متقابل اثر رامينځ ته کړي.

نو لاس په کار شئ ملګرو! زمونږ مخې ته يوه ستونزمنه او نوې دنده پرته ده، خو ستره او مقدسه دنده - د سوسيال دېموکراتو کارګرانو د غورځنګ سره نه بېلېدوکې پراخه، هراړخيزه، او متنوع ادبياتو ته بايد سازمان ورکړو. ګرد سوسيال دېموکراتيکه ادبيات بايد په ګوندي ادبياتو بدل شي. ټولې ورځپاڼې، مجلې، خپرندوی مرکزونه بايد سملاسي خپل کار له سره تنظيم کړي، چې د داسې وضعيت لامل شي چې دا خپرونې په دې يا هغه بڼه د ګوند په دې يا هغه سازمان کې مدغمې شي. يوازې هغه وخت به "سوسيال دېموکراتيکه" ادبيات سوسيال دېموکراتيکه ادبيات شي، يوازې هغه وخت به وکولای شي خپله دنده ترسره کړي او ان د بورژوايي ټولنې په چوکاټ کې به وتوانېږي، چې د بورژوازی له مريی توب ځخه خلاص شي او د واقعاً پرمختللې او کاملاً انقلابي طبقې له غورځنګ سره مدغم شی. [۷].

---

## يادښتونه

[۱] د ګوند تشکيلات او ګوندي ادبياتو په بنستيزه ليکنه کې، چې په هغې کې و.ا. لنين د ګوندي ادبياتو پرنسيب ځرګندوي، د ګوند په بشپړ کار کې د ايدیالوژيکې مبارزې ځای ټاکي او د حزبيت او د ادبي او هنري خلاقيت مسئله په بنستيزه توګه د پرولتاريا له دريځ له مخې روښانوي. دا ليکنه د ۱۹۰۵م کال د نوامبر په ۱۳مه د نوايا شيزن په ۱۲مه ګڼه کې خپره شوه.

نوایا شیزن (نوی ژوند-Nowaja Shisn) – لمړۍ بلشویکي قانوني ورځپانه، چې د ۱۹۰۵م کال د اکتوبر له ۲۷مې (د نوامبر له ۹مې) د دسمبر تر ۳مې (۱٦مې) په پیتربورګ کې خپره شوه، په رسمې توګه د نوایا شیزن مسئول مدیر شاعر ن. م. مینسکي (N.M. Minski) و او خپرونکې مدیره یې مېرمن م. ف. اندرېیوا (M.F. Andrejewa) وه. وروسته له هغه، چې و. ا. لنین د ۱۹۰۵م کال د نوامبر په پیل کې له کډوالۍ څخه راستون شوی و، ورځپانه د هغه تر مستقیم لارښوونې لاندې خپره شوه. نوایا شیزن عملاً د روسیې د سوسیال دېموکرات ګوند مرکزي ارګان و. د ورځپانې نږدې همکاران و. د. بونچ-برویېفیچ، ا. و. لوناشچارسکی، م. س. اولمینسکی ، و. و. وورووفسکي او نور وو. ماکسیم ګورکي په فعاله توګه په ورځپانه کې کار کاوه او له هغې سره یې مالي مرسته وکړه. په ورځپانه کې د و. ا. لنین ۱۴ لیکنې خپرې شوې.

نوایا شیزن ډېرې وخت له غچ اخیستلو سره مخ شوې. دا ورځپانه د دسمبر په دوهمه د ۲۷مې ګڼې له خپرېدو وروسته د تزاري حکومت له خوا بنده شوه. ۲۸مه ګڼه یې په غیرقانونی ډول خپره شوه.

۲] موخه د ۱۹۰۵م کال په اکتوبر کې په روسیې کې عمومي اعتصاب دی، چې تزار یې اړ کړ چې د ۱۹۰۵ کال د اکتوبر ۱۷مې مانیفست خپور کړي چې له مخې یې خلکو ته مدني آزادۍ ورکړل شوې وه. بلشویکانو د خپرونو له آزادۍ ګټه پورته او خپله ورځپانه یې رسمي کړه. د ۱۹۰۵ کال د دسمبر میاشتی د پوځي بلوا له ځپلو وروسته، استبدادي نظام د کارګرانو پر تشکیلاتو او ورځپانې بریدونه پیل کړل.

۳] ازویستا سوویتا رابوچیچ دېپوتاتوف - د شوروي کارګرانو د استازو خپرونه - د شوروي کارګرانو د استازو رسمې ارګان و، چې د اکتوبر له ۱۷م (۳۰م) څخه د دسمبر تر ۱۴مه (۲۷مه) پورې خپور شو او په پرله پسې توګه یې د شوراګانو د فعالیت په اړه مالومات خپرول. ورځپانې دایمي اداري ټیم نه درلود؛ پخپله د کارګرانو لخوا د بېلابېلو بورژوایي ورځپانو په چاپتونونو کې چاپېدله. ۱۰ ګڼې خپرې شوې. ۱۱مه ګڼه د چاپ پر مهال د پولیسو لخوا ضبط شوه.

٤] ا. ی. ګوچکوف (۱۸٦۲ - ۱۹۳٦) – د سترې او سوداګریزې بورژوازي سلطنتپاله استازی و.

٥] پرولتاري (پرولتاريا) – غیر قانوني بلشویکي اونیزه خپرونه، د روسیې د سوسیال دېموکرات کارګري ګوند مرکزي ارګان، د ګوند د ۳مې کنګرې د پرېکړې پر بنسټ رامېنځ ته شوه. د ۱۹۰۵م کال د اپریل میاشتې په ۲۷مه نېټه د ګوند د مرکزي کمیټې په پلنوم (عمومي غونډه) کې و. ا. لنین د مرکزي ارګان مسئول مدیر وټاکه. پرولتاري د ۱۹۰۵م کال د مې له ۱۴مې (۲۷مې) د نومبر تر ۱۲مې (۲۵مې) په ژنېو کې خپره شوه؛ ټولې ۲٦ ګڼې خپرې شوې. پرولتاري د زاړه لنینی ایسکرا (Iskra) او بلشویکي وپریود سیاسي کرښې ته دوام ورکړ. لنین د اونیزې لپاره نږدې ۹۰ لیکنې او یادښتونه ولیکل. هغو مقالو به د اونیزې سیاسي کرښه، ایدئولوژیکه منځپانګه او بلشویکي بهیر ټاکلو. لنین د رهبر او د اونیزې د مسوول مدیر په توګه ډېر زیات

کار تر سره کړ. هغه به د خپرېدلو وړ مطالب ایډیټول او اصولو او ګوندي روحیې ته وفادار و. لنین به د مهمو تیوریکو مسایلو په دقت سره څرګندولو برسېره د انقلابي غورځنګ مسایل روښانول.

تحریریه پلاوي سره به په دوامدار ډول د و. و. وروفسکی. ا. و. لونشچارسنکي لخوا مرسته کېدله او م. س. اولمینسنکي، ن. ک. کروپسکایا، و.م. والیچکینا او و.ا. کارپینسکیبه د لیکلو په کار کې ډېره ونډه اخیستله. دې اونیزې په روسیې کې د کارګرې طبقې له غورځنګ سره دېرې نژدې اړیکی لرلې. د هغو کارګرانو مقالې او نور موضوعات به یې خپرول، چې په مستقیم ډول یې په انقلابي غورځنګ کې ګډون لاره. و.د. بونخ بوریویش، س. ا. ګوسیف، او ا. ی. اولیانوا ـ ایلی زاروا په روسیې کې د مقالو د راټولو او ژنیو ته د لېږلو دنده په غاړه لرله او ن. ک. کروپسکایا او ل.ا. فوتویا په روسیې کې د لوستونکو او د ګوند د سازمانونو د اړیکو مسوولان ول.

پرولتاري په چټکی سره د روسیې د کارګری طبقې د غورځنګ او نړیوالو پېښو په اړه غبرګون ښکاره کاوه. بې له ځنډه به د منشویکانو او نورو اپورتونیستو او رویزیونیستو عناصرو په وړاندې جنګېدله.

دې اونیزې د ګوند د دریمی کنګرې د پرېکړو د تبلیغ لپاره ډېر کارونه تر سره کړل او د بلشویکانو په تشکیلاتي او ایدیولوژیک وحدت کی یې څرګند رول ولوباوه. دا د روسیې د سوسیال دیموکراتانو یوازینی ورځپانه وه، چې تل یې د انقلابي مارکسیزم څخه ملاتړ کاوه او په روسیې کې یې د پرمختګ په لور د انقلاب اصولي مسئلې ارزولی. د ۱۹۰۵ کال د پېښو په اړه یې د بشپړو اطلاعاتو په ورکولو سره پراخې زیارکښه ولسي پرګنې د انقلاب د بریا لپاره مبارزې ته وهڅولې.

پرولتاري ورځپاڼې د روسیې په سوسیال دموکراته سازمانونو زیات نفوذ لاره، تر دې پورې، چې د لنین ځینې مقالې به د بلشویکو ورځپاڼو لخوا بیا بیا چاپېدلې او د جزوې په توګه به خپرېدلی.

وروسته له هغه چې لنین د ۱۹۰۵م د نومبر په پیل کې روسیې ته سفر وکړ، لږه موده وروسته د پرولتاري خپرېدل بند شول. وروستې دوې ګڼې (۲۵مه او ۲۶مه ګڼه) د و. و. وورروفسکي تر مدیریت لاندې خپرې شوې، خو لنین هم د دې دوو ګڼو لپاره یو شمېر لیکنې وکړې، کومې چې له ژنیو څخه د ده له وتلو وروسته خپرې شوې.

[٦] دا اصطلاح په اصلي روسي منابعو کې اشتباهاً Ramkakh (دقالبونو په معنی) د Ramanak پر ځای د کیسو په (معنی) چاپ شوې ده.

[۷] د Novaza Zhizn خپرونې په ۱۲ مو او ۱۳ مو ګڼو کې د ۱۹۰۵م کال په نوامبر کې د ن لنین په امضا چاپ شوې.



دا به آزاد ادبیات وي، ځکه چې نه به د هغو مشهورو لوبغاړو مېرمنو په چوپړ کې وي، چې له مړښته کانگې ورځي او نه به د هغو «له لس زرو پورته» ستومانه انسانانو په چوپړ کې وي، چې د خپل بدن د وازگو د خوسا کېدلو څخه کړېږي، بلکې د میلیونونو او د لسگونو میلیونونو زیارکښانو - دا د هېوادگلانو، دا د هېواد ځواک او دا د هېواد راتلونکي - په چوپړکې به وي.

